اخلو به مدام‌له خپل دښمن نه انتقام

ارض او سمأ ، انس‌وجن ولاړ په‌احترام

الله اکبر لا اله الا الله لا اله الا الله الله اکبر

تل د وی حاکم دوی قرآن زمونږ رهبر

تل دوی قائم دوی قرآن‌زمونږ رهبر

لمر غوندی ښکاریږی ستا په مخ باندی قرآن

پاک کلمی هم لکه ستوری د آسمان

ستا په مینه مست دی ستا د مینی مجنونان

نوم دپاک الله ، ؤ محمد لره سلام

ارض و سمأ ، انس او جن ولاړ په احترام

الله اکبر لا اله الا الله لا آله الا الله الله اکبر

تل دوی حاکم دوی قرآن زمونږ رهبر

تل د وی قائم د وی قرآن زمونږ ر هبر

لا اله الا الله الله اکبر لا اله الا الله الله اکبر

اورو لا اله الا الله له سنگرو

غواړو شین بیرغ د مدینی په منارو

واړه مؤمنان دی خپل مولاته په‌زارو

بله یې آرزو د مؤمنینو انتقام

ارض او سمأ ، انس اوجن ولاړ په احترام

الله اکبر لا آله الا الله　　　لا آله الا الله الله اکبر

تل د وی حاکم دوی قرآن زمونږ رهبر

تل د وی قائم د وی قرآن زمونږ رهبر

الـه الا الله الله اکبر　　　لا اله الا الله الله اکبر

ستـا په ښـکلی مخ باندی انوار د هدایت

ځکه خفا شان ستا په دیدن دی خجالت

کړی مسلمانان ستا په سرو وینو حفاظت

ستا عزت «نوری» بولی په ځان باندی الزام

ارض او سمأ ، انس او جن ولاړ په احترام

الله اکبر لا اله الا الله　　　لا اله الا الله الله اکبر

تل دوی حاکم د وی قرآن زمونږ رهبـر

تل د وی قائم دوی قرآن زمونـږ رهبـر

لا الـه الله الله اکـبر　　　لا اله الا الله الله اکبر

«۲۰ - ۶ - ۱۳۵۸ د وردگو د گربت په جبهه کی»

# د حق آواز

جنګ داسلام خاوره کې روان په سپین قرآن دی　　قرآن دی

لااله الا الله　　لااله الاالله

جوړ دشهیدانو له سرو وینو نه طوفان دی　　طوفان دی

لااله الاالله　　لااله الاالله

جوړ دشهیدانو په هر ځای کې مزارونه دي

وران ډیر مسجدونه دي ـ وران ډیر مسجدونه دي

نن په جیلخانو کې د الحاد پراته ګلونه دي

رنګ په رنګ دردونه دي ـ رنګ په رنګ دردونه دي

کور ته موراغلی نن ملحد بې دین شیطان دی　　شیطان دی

لااله الاالله　　لااله الاالله

لوړ په سر دروکې داسلام شنه بیرغونه دي

ښکلي نښانونه دي ـ ښکلي نښانونه دي

تور توپک په لاس کې دغازیانو تکبیرونه دي

وران دروس تانګونه دي ـ وران دروس تانګونه دي

جنګ دعقیدې دی جوړ لښکر د پاک سبحان دی　　سبحان دی

لا اله الا الله • لا اله الا الله

پاځې وخت د ننګ دی کونډې بورې یتمان ژاړي

حکم د قران غواړي ـ حکم د قرن غواړي

ښکلی ماشومان رنګین په وینو شهیدان غواړی
ورونه اسیران غواړی ـ ورونه اسیران غواړی
وران شول انګړونه ځی کاروان جوړ دهجران دی هجران دی
لا اله الا الله لا اله الا الله

زوړ دی دغازیانو په روسانو ګذارونه دی
شنډ د روس پلانونه دی ـ شنډ د روس پلانونه دی
مړ لعین برژنیف دترکی په کور غمونه دی
ورک خبیث شکلونه دی ـ ورک خبیث شکلونه دی
لا اله الا الله لااله الا الله

وایم حیدری مسلمان خاص د رب رضا غواړی
دین دمصطفیٰ غواړی ـ دین د مصطفیٰ غواړی
ورک د اروپا انتخاب شوی شاه ګدا غواړی
هر کافر تبا غواړی ـ هر کافر تبا غواړی
پاک سپیڅلی دین دهر مؤمن د زړه آرمان دیٌ آرمان دي
لا اله الا الله لا اله الا الله

# اسلام زنده باد

اسلام زنده‌باد　　　　قرآن زنده باد

زنده باد ، زنده باد اسلام زنده باد　　　　قرآن زنـده باد

وطن د افغان - رنـگین او ویـران - رنگین او ویـران

ژونـدون په‌زندان - خنـدان شهیدان خنـدان شهیدان

په زور د ایمان ورکوو به الحاد

اسلام زنده باد　　　　قرآن زنده باد

زنده باد ، زنده باد اسلام زنده باد　　　　قرآن زنده باد

الله مو مولی - رهبر مصطفیٰ - رهبر مصطفیٰ

بهتر له دنیا - ژوندون د عقبیٰ - ژوندون د عقبیٰ

د وینو طوفان به وطن کړی آزاد

اسلام زنده باد　　　　قرآن زنده باد

زنده باد ، زنده باد اسلام زنده باد　　　　قرآن زنده باد

رسوا شو الحاد - نمرود و شـداد - نمرود و شـداد

ښکاره کړل جهاد - اخلاص او فساد - اخلاص او فساد

تعمیر د اسلام به مؤمن کړی آباد

اسلام زنده باد　　　　قرآن‌زنده باد

زنده باد ، زنده باد اسلام زنده باد　　　　قرآن زنـده باد

الله اکبر ـ الله اکبر ـ الله اکبر
دی ډیر معتبر ـ شهید د سنګر ـ شهید د سنګر
رنـــګیـــن ئې په وینو میدان د جهاد
اسلام زنده باد قرآن زنده باد
زنده باد ، زنده باد اسلام زنده باد قـــرآن زنده باد
ژوندون په هجران ـ غمګین و حیران ـ غمګین و حیران
مؤمن وی ګویان ـ پاینده قرآن ـ پاینده قرآن
خواهان «حیدری» اتحاد اتحاد
اسلام زنده باد قرآن زنده باد
زنده باد ، زنده باد اسلام زنده باد قرآن زنـده باد

# د حــق شـهـیـده

چه په سرو وینو د سپینی جامی رنګ شوی
خدای ببښلیه د ګلاب د ګل په رنګ شوی
خـدای ته هلته د عالی مقام خاوند کړی
چه د حق په لمبو پوخ لکه پتنـګ شوی
کـناری د آسمان هـلـه واړه سری شوی
چه په وینو باندی سور پاس په‌پالنګ شوی
خوشحالی او شکرانی دستا په حال شه
چه‌په ښو سترګو له یار سره په خنګ شوی
د جـنت په زیـری هـله مشرف شـوی
چه په حق کی له دښمن سره په جنګ شوی
افتـخار د دواړو کونـو دی روزی شـه
چه‌شهیدپه‌خپل ناموس او په‌خپل ننګ‌شوی
له دنیـا نـه د جانان حضـور ته ولاړی
نـیک ګوئی د نیک سیرتـو د قـلتګ شوی
په دنیا کی د رنګ زېړ شونډی‌دی‌وچی
اوس په زور کی د اورنګ پهسراورنګ شوی
حبیبت (۱) د رحمان هله ستا نصیب شو

چــه په لاره د اســلام پسی ملنـگ شوی

جنــازه د ملائــکو د نصیب شوه

چه روان له دی دنیا په هغه درنـگ شوی

ستا سبب د فضیلت یگانه دا ؤ

چه په حبــل د الله بانـدی په جنگ شوی

چه له دی فانی جهانه په وداع شـوی

کوز دخلک پامس‌دی‌زانی‌په شورشرنگ‌شوی

د اسلام د شازلمو د سر شمله شوی

چه‌خاوند دسره کمیس او د سره لنگ شوی

خوشبوئی د جهانگیره په عالم شوه

ما وی سری وینی د عطر یا لونــگ شوی

د دښمن وینی دی توری لکه زنگ دی

د جنت حورو ته ستا وینی تات رنگ شوی

حیدری وایي ستا لاره به تعقیب کړم

ته رونړستوری زمونږ دعلم اوفرهنگ شوی

---

(۱) شهید حبیب‌الرحمان انجنیر‌صاحب ته اشاره ده

۱۳۵۲ - ۹ - ۴

# دشهادت اجر

ستاپه قطرو دوینو جوړ افغانستان شهیده
جهاد. وسله دآزادی دتول جهـــان شهیده
په‌مبارک مزاردستا باندی ښکارېږی ګلان
رنګ ئې دوینو، بوی‌دعطرو دسبحان‌شهیده
ځان د قربان کړد اسلام اود وطن لپاره
ستا دغیرت سندری وائی بلبلال شهـــیده
ناری ، سوری په دوهلی دجـــهاد لـــپاره
شولی بلبل دمحمد (ﷺ)دګلستان شهیده
دخدمت مـــلادی‌وه‌تـــړلی‌دقـــرآن لـــپاره
اوس‌شول‌دستاخدمتکاران‌حوری‌غلمان‌شهیده
طبیب حبیب ستا دزخمونو دوصال په‌مقام
شوی دزخمونودپروالی په‌آرمان شهـــیده
مجنون، مجنون نه وهوښیار وچه دیارلپاره
په بیابانونوکی ګرځیده بېوچ‌شوندان شهیده
چاچه دستاپه شهادت شکر او صبر وکړ
ځای ئې جنت‌دی‌یتیمان که‌نوردوستان‌شهیده

ومحبت په رنځ رنځور په کرځیدی په عمرولو

اوس د نصیب شو لوو صال دخپل جانان شــهیده

هسی مقام دشو لصیب د شهادت پخاطر

چه کړي آرمــان دژوندون او د قربان شهیده

دنیا څو ورځې ژوندون دی په هرچا تیریږي

ستا ګلابي جامي په تن شولی روان شهیده

حیدری تا پسی دعا کړي په هر صبح ،هر شام

ما په څوک یاد کړی خدای خبر که شم روان شهیده

وردګ -۱۳۵۸-۱۱-۲۰




بسم الله الرحمن الرحيم

## حمد

ثنا وايم د مولا غنی سبحان
په هر څه باندی قادر او لا مکان

بی له شکه مربی د ټول عالم دی
له هرچا نه دی قدیر او مهربان

دی مالک د لویی ورځی د جزا دی
هرتوا نا دده قدرت ته دی ناتوان

قریشی نبی لویه نسبه د رحمت ده
چی په نور ئی نورانی کړ ټول جهان

ښکلی نوم ئی محمد (ص) عربی دی
هم ئی ښکلی دی کتاب نوم ئی قرآن

خدایه لاره د نیکانو می نصیب کړی
هم له ملکه مو کړی ورکه ملحدان

یا ستاره ، یا رحیمه یا رحمانه
کړه عیبونه پوشیده می په احسان

بی له حده گناهکار او بد کرداریم
ستا رحمت دی چی پرېږدی می په جهان

ټول جهان او مافیها ستا په ثنا دی
گدایان دی په دنیا کی که شاهان

سخت حالت د ځانکدن می ته آسان کړی
هم می وساتی له شره د شیطان

تنهائی د گورستان ده ډیره سخته
حیدری کړی له عذابه په امان

# « هیری بەنەشی سترگی‌سری‌دیتیمانو »

ځان کره په سرو وینو دګلاب دګل پەرنګ رنګ
بیا کره ادعاد محبت او نام وننګ ننګ
ځان په محبت کی‌دمنصور غوندی پەدار کره
ژوند د بلبلانو په تولی کسی د ګلذار کره
خوښ‌پەرحمتونو پاک الله اوپاک رویدار کره
وربی‌شه جضور ته سو رقمیص اوپه سرەلنګ لنګ
بیا کره ادعا د محبت اونام وننګ ننګ
پندشول شنه زمریان دملحدینوپه پجرو کی
ښکاری‌د شهید دوینو رنګ په کنارو کی
کوندی ، یتیمان او بوری واره په نارو کی
وکره مجاهده له دښمنه سرەجنګ جنګ
بیا کره ادعا دمحبت او نام وننګ ننګ
هیری بەمی نشی سترګی سری دیتیمانو
سور یاقوتی رنګ دسروجامو د شهیدانو
داغ به می په زړه کیەوی ستم د ظالمانو
پریسوزه مجاهده سور په وینو په پالنګ لنګ
بیا کره ادعا دمحبت اونام و ننګ ننګ

گرانه مجاهده په عمل کی صداقت کړه
تل د خدای لپاره‌په‌هر څه کی‌دخپل‌نیت کړه
وایه استغفار او تل سوالونه د رحمت کړه

وکوه حمله پـه خپـل د ښمن لکه پلنګ/لنګ
بیا کړه ادعـا دمحبت او نام وننګ ننګ

ګرځی نازولی وچی شوندی بیا بانونو کـی
ښکاری شنه طوطیان‌اوسره ګلان‌په‌دامانونو کی
څوک‌دی‌لوندګریوان اوپه‌سلګو اوآرمانو کی

سوځه داسلام په دیوه نن لـکـه پتـنګ تـنګ
بیا کړه اد.ا دمـحبت او نـام ننګ نـنګ

ولی نـه کوی درب په لار کی جهـادونه
کاندی مظلومـان لـه ظـالمانـو فریادونه
خوښ دی په هجرت د ستمګر له پیوستو نه

وکړه ددښمن په سر ګذار په شور و شرنګ شرنګ
بیا کړه ادعا د محبت او نـام و ننګ ننګ

یـمـه ګیلـه‌من لـه بی‌عمـلـه عالمانـو
هم په باطن تورو په ظاهـر کی مسپین الوانو
کار د عالمانـو په دارنـګ د یـهودیـانـو

ځان د کړه «نوزیه» په ظاهر ، بـاطن یکرنګ رنګ
بیا کړه ادعا د محبت او نام و ننګ ننګ
وردګ ۱۳۵۸ - ۸ - ۲۰ -

# مسلمانو ته پیانوته

خدای(ج) مو روغ کړه ننګیالو مسلمانانو
دغیرت پهوینو رنګ ټپی ځــوانانو
محبت مو په زخمو نو کی ښــکاره شی
داسلام په ډیوه سویو پتنګانـــو
ګراونــه دی دستــور پــه عــاشــقی کی
حاصل نــه‌شی مفت‌وصال‌دحبیبانو
دمؤمن شعــار هـمیــش حسبــنا الله دی
کـــه هـرڅو زیات وی قدرت دملحدانـو
تل داجر طلبګار اوسی له خــدایــه
طمع مه کړی د عوض له بنده‌ګانو
د کرملین مانی آخر په رنګیــدو ده
د سرو وینو په سیـُلاب د شــهیــدانو
حیدری ئی په زړګی دی زخمی کړی
انجنیر عبـدالمتین غونـدی یارانـــو
خدایه ستا د ابتــلاً طاقت مو نشته
رحم وکړی په مظلومو مسلمانو

۵-۶-۱۳۵۹ - پشاور

# مرگیه‌سری جامی درڅمه

دومره‌مي پرېږده‌خپل‌وطن آزادومه — مرگیه‌سری جامی درڅمه

یا به‌مي سري‌جامی په تن شي
یا به آزاد مو خپل وطن شي
غرونه ، رغونه به گلشن شي

دالحاد ظلم به‌جهان له‌یادومه — مرگیه‌سری جامی درڅمه

اوري د سرو وینو باران دی
نن سبا جوړ ترینه طوفان دی
کرملین څکه په لړزان دی

که‌خدای‌سی‌مل‌ؤشي‌بیرغ‌بورپومه — مرگیه‌سری جامی درڅمه

دا د بشر خد متگاران دی
که‌ځناور دی یا ماران دی
یا همه وارهٔ خنزیران دی

یله‌تحفه‌ئی چاله‌نشته بی‌له‌غمه — مرگیه سری جامی درڅمه

عجب‌ژوندون‌عجب‌روزگاردی
چه‌ورور‌له‌ورور ځینی بیزاردی
په بیلو لارو ئی رفتار دی .

ځوک‌په خندادی‌ځوک‌ئی‌سري‌له‌ویره‌غمه — مرگیه‌سری جامی درڅمه

په کابل جنګ روسان راغلی
مسلمانان پری پاریدلی
په کانو ولی دا ناولی
هر یو ئی وانی چه روسان به تکومه — مرګ یمه سری جامی د ر ځمه
افغانستان دجنګ میدان شو
د کمونیزم ګورستان شو
په شهیدا نو ګلستان شو
نالحاد تخم په جهان کی ورکومه — مرګ یمه سری جامی درځمه
۲۵ ـ۷ ـ۱۳۵۹ ـ پشاور

## «دمجاهد آرزو»

خان بهٔ په سرو وینو رنگین دکل پشان کرمه زه

یا به لهٔ خاورو خنی پورته سپین قرآن کرمهٔ زه

یا بهٔ می غوبنی خوری مرغان، سرمی جداله تــنه

یا بهٔ رپانده شین بیرغ پهٔ تول جهان کرمهٔ زه

یا بهٔ می تن ترخاورو لاندی شی پخــپل هیــوادکی

یا بهٔ پهٔ توره دتوحید ،نسکوربتان کرمــه زه

یا بهٔ می کرځی بتمان پلی په دبنــتو، غرونــو

یا به ویران افغانستان جورپه بهشان کرمهٔ زه

ایری دظـالمــانــو پــه لــمبــوکی شــمه

یا به دیوه د اسلام بله په جهان کرمهٔ زه

یا له جهانه به کرم ورکه سفسطه د الحاد

یا بهٔ شهید لکه تاثب، خان ســید خان شــمه زه

یا بهٔ می غوبنی دتانکونو په چیــنوکی وینــی

یا خو بهٔ ورک لهٔ نحپل وطنه سرهٔ روسان کرمه زه

یا بهٔ لیک لوست کری ماشومان پهٔ مدرسه دقرآن

یا تر قیامته به بندی په گورستان شــمه زه

یم حیدری په زره زخمی پهٔ شهیدانو پسی

لرم آرزو چه خان پهٔ دین باندی قربان کرمهٔ زه

# په وطن جنګ دی

هر مجاهد په وینو د ګل په رنګ دی ـ ځی ننګیالو ځوانانو په وطن جنګ دی

په وطن جنګ دی ورونو راځئ چه ځونه
کړو دښمنانو لره جوړ سنګرونه
ځای مو د زمریانو په شیر غرونه، رغونه

لوړ مو تیر شوی ورونو خوب د پالنګ دی ـ ځی ننګیالو ځوانانو په وطن جنګ دی

راځئ چه لن کړو حاصل د جانان مینه
دشهادت په وینو ځان کړو رنګینه
بیا کړو آزاد خپل وطن له شوروی نه

په مسا[illegible]بولی ځان له ژونده تنګ دی ـ ځی ننګیالو ځوانانو په وطن جنګ دی

جنګ خویندی لونی کوی مسلمانانو
په دین ننګ و کوی پاځی ځوانانو
چه غوڅ سرونه کړو نن د ملحدانو

د پښتنکانو د دین د تورو شرنګ دی ـ ځی ننګیالو ځوانانو په وطن جنګ دی

جنت راغلی ورونو زموږ کور ته
ابراهیم ځان کړو ګذار د مینی اور ته
راځی چی سترګی کړونن جانان له پورته

راغلی کور ته مونږ ملحد بی ننګ دی ـ ځی ننګیالو ځوانانو په وطن جنګ دی

وروڼودچنګ پهلوري راځي روان شو
یا ګرو آزاد خپل وطن یا شهیدان شو
یاخپلو وروڼو پهخیر سر په زندان شو
دمحبت په لمبو سوی پتنګ دی    ځې ننګیالۍ ځوانانو پهوطن جنګ دی

ګوري روسان راغلي وروڼو بیدار شي
نورولهعیث کارونو ګرانو بیزار شي
ګوري جهاد پرپښردی کهسرپهدار شي
دپهری ځان خبر کړ مولت دغور ځنګ دی    ځې ننګیالوځوانانو پهوطن جنګ دی

۱۳-۱۰-۱۳۵۸ - وردګ

# راځئ دننګ میدان دی

اخترزموږ دی‌چی ایمان موږه قرآن‌دی
راځئ دننګ میدان دی راځئ ورونــو راځــی
تو‌یک راواخلی چی‌روان شو
سر په‌ځنګل، غرونو بیابان‌شو
د حق د مینی پتنګان شــو
له دین، ناموس ځنی قربان‌شو
کورته راغلی موملحد بې دین شیطان‌دی
راځئ د ننګ میدان دی راځئ ورونو راځئ
خالی دناز ښکلی پالنګ کړی
خوبونه‌پریږدی‌ورونوجنګ کړی
لاس ددښمن‌په‌وینو رنګ کړی
لدهر څه‌بې لدجهاد ځنګ کړی
پهسر ذرو ک سوبیرغ لوړ په‌آسمان‌دی
راځئ دننګ میدان دی راځی ورونو راځئ
پـه ســردروک ســنګــرونــه
چه ناز ریــږی بــیرغــونــه

# نــعت شریف

دکربلا دشهیدانو جد امین دی          لوړ پهٔمرسلانو رب تهٔنازنین دی

څلور یاران دی لـکه ستوری محمدعربی

صدیق ـ عــمر ـعثمان‌علی‌حیدرعـربی

ئی لوی استـازی له نبیانـو د صمد عربی

پهٔسپین قرآن کی‌دلقب‌طه یس‌دی          لوړپه مرسلانو رب تهٔنازنین دی

تاج دلولاک دمبارک شه قریشی لقبی

شولی په بدر کی منصورپه ملائک دربی

درب دیدار دشونصیب ای هاشمی نسبی

دستا له رویه مدینه یثرب‌زمین دی          لوړ پهٔمرسلانورب‌تهٔنازنین‌دی

دمدینی دیدن په زړه کی‌ستا لهٔرویه مدام

سلام‌سلام همیش په تاباندی درودو سلام

لوړ په عیسی‌ـیوسف‌ـخلیل‌ـ ذبیح‌الله دمقام

رنګیی په وینو داحد دماجبین دی          لوړ پهٔمرسلانورب ته نازنین‌دی

درب لهٔلوری شو نازل په تا قرآن حبیبه

وروسته روان‌شول ـتا په لارهٔمؤمنان‌حبیبه

شو دایمان‌په پلوشـو ګـنا جهـان حـبیبه

ئن‌دایمان‌پهٔوینورنګ‌افغان زمین‌دی          لوړ پهٔمرسلانو رب تهٔنازنین‌دی

هره خوا اوری تکبیرونــه
ښکلی ښکاریږی دښتی غرونــه
په کرنګو کی تلاوت د پاک قرآن دی

راځی دننګ میدان دی راځی ورونو راځی

افغانستان د جنګ میـدان دی
په‌وینورنګ ځمکه اوآسمان دی
دښته‌اوغـر کـه ګلسـتان دی
د کمونیزم ګورمـستان دی
ورونو بیدار شی چه‌نن وخت دامتحان دی

راځی دننګ میدان دی‌راځی‌ورونوراځی

د کمونیزم ځانکـندن دی
ګورباچف ځکه‌دیرغمجن دی.
خپل‌موقانونز خپل‌مووطن‌دي
خپل‌ګلستان خپل موچمن دی
دظالم خوله بـه‌شیـرودامـو اعـلان دی

راځی دجنګ‌میدان دی راځی ورونوراځی

# زلمیه ویښ شه

زلمیه ویښ شه سره روسان راغلی    غله د ناموس او قرآن راغلی
توری ته لاس کړه بې دینان ووژنه    ناموس پلورونکی ملحدان ووژنه

وطن پلورونکی هیڅ غیرت نلري
دا بې وجدانه خجالت نلري
ژوند ئې بې سره دی عفت نلري

دا د پردیو مزدوران ووژنه    ناموس پلورونکی ملحدان ووژنه

کوکی وهي دبشریت دخدمت
مگر وحشت ئې په وحشت کی وحشت
په خوله ئې ناری د انسانی کرامت

دا لاف وهونکی کاذبان ووژنه    ناموس پلورونکی ملحدان ووژنه

کلو باندو ته په ټانکو کی راځی
یا د بادار په طیارو کی راځی
په افتخار اوپه نخرو کی راځی

دا دارومار وجاسوسان ووژنه    ناموس پلورونکی ملحدان ووژنه

په ماشومانو بمبارونه کوی
په مسلمانو گذارونه کوی
د انسانیت په ضد کارونه کوی

دغه ځیر سترگی ظالمان ووژنه    ناموس پلورونکی ملحدان ووژنه

# پورته مسلمه

پورته مسلمه کوندی بوری یتمان وکتِه

وران مسجدونـــه پورت په خاورو کی قرآن وکتِه

چه په زانګو دخپل وطن کی ئی خوبونه کول

په نـــاز لوی شوی په هجران کی ماشومان وکتِه

مستوری خویندی داسلام په انګرو کی وی تل

نـاستی حیـرانی په لمـبو د پاکستان وکـتِه

چه پتنګان وو داسلام په مینه مست د قرآن

په زنـدانـو کی د الحـاد پراتـه غازیـان وکـتِه

چه خپل سرونه ئی قربان کړل د اسلام په مینه

تر خاورو لانـدی رنګ په وینـو شهیدان وکتِه

د التـقام سـترګی په لاره مظلومان د جهان

تـوری تـه لاس کړه بخارا تـاجکستان وکـتِه

شعار ئی کور کالی ، دوډی خدمت بـشر لره ؤ

د کاذبـانو پـه لاس وران افغـانسـتـان وکـتـه

« حیـدری » ځان سپاره الله ته له چا مه ویریږه

له دارمارو ظالمانو ، مظلومان وکتـه

- ۲۵ - ۱۰ - ۱۳۶۱ - بادام - اوبخی

# وینس شه مسلمانه

وینس شه مسلمانه‌نور حرام خوب‌دپالنګ دی
پروت په‌سپیرو خاوروکی قرآن‌مقام دننګ دي

وینس شه مسلمانه
سترګی توروی ښکلی ځوانان جنګ له روان‌دی
دلته زموږ کورته اوس راغلی ملحدان‌دی
نن دآریانا وطـن پـه وینـو رنـګ دی
پروت په سپیرو خاورو کی قرآن مقام‌دننګ‌دي

وینس شه مسلمانه
دلته سنګرونه دالحاد په ضـد جـوړیـږی
ښکلی ښرونه جنتونه سینګاریږی
هلته سر سر تورحاجی مزدور وهلی لنګ دی
پروت په سپیرو خاورو کی‌قرآن مقام دننګ دی

وینس شه مسلمانه
وران‌شول مسجدونه سرمروسان‌کړی بمبارونه
لاندی‌شول ترخاورو دپرسپځلی رخسارونه
ځای‌دمسلمانو دښتی، غرونه او کرنګ دی
پروت په‌سپیرو خاورو کی قرآن مقام دننګ دی

ویښ شه مسلمانه

ښکلي پیرغونه جګوغرنو کې رپیږي

دکې هدیرې‌شوې شیهیدان مو ډیر یادیږي

اخلو انتقام چه پاک الله زموږ تر څنګ‌دی

پروت په سپیرو خاورو کې قرآن مقام‌دننګ دی

ویښ شه مسلمانه

ګورې وارخطا نشي الله زموږ مولی دی

لوړ په مسلمانوکې رهبر مو مصطفی دی

دین زموږ اسلام ، قانون قرآن مؤمن پټنګ دی

پروت په سپیرو خاور کې قرآن مقام دننګ دی

ویښ شه مسلمانه

کاندې طیارې په هوا کې پروازونه

ګوز له‌ځمکې دغازیانو پټ رازونه

ناست ورته ګوښه کې پټ جاسوس ، خبیث بې‌ننګ دی

پروت په سپیرو خاورو کې قرآن مقام د ننګ دی

ویښ شه مسلمانه

# قــرآن مى نه هيريرى

كه‌په حق‌خوك‌له انكره جداكيري    جدانه‌دى دحق‌لورته نژدى كيرى
داچى‌سري جامى‌شهيددى‌دحق‌لاركى    مرئى‌مه‌بوله‌ژوندون‌ته وصل كيرى
داچى زره‌ئى دباطل په‌چرو غوخ‌دى    دازخمونه‌په سبحان‌روغتون‌رغيرى
پاک الله له كبرجــنو راضى ندى    درحمت مورد هغه‌دى چى كريرى
دژرا خاى‌به‌ئى‌راشي‌چى اوس‌خاندى    بيا به‌وخاندى‌چى‌رب‌ته اوس‌ژريرى
څه ښه وائى چى كري هغه به ريبى    دقدرت دغه قانون‌دي نه بدليري
هغه‌خوله‌چى دمؤمن په وينوسره‌وي    خامخا دعدالت په‌سوک ماتيرى
آسمان ، څمكه‌بيهوده ورسره ښكاري    چى‌بى‌قيده په هر لوښى‌كى لوغيري
هره څانكه ئى دفتر د معرفت دي    داپه‌څمكه‌هم‌آسمان كى‌چى‌ښكاريري
له بى عقلو او رنـدو نه گيله نكرم    له هغو نه گيله‌من‌يم‌چى پوهيري
جومات‌وران كرسروروسانودائى‌كلردي    چم‌معمارئى ورانوي زره‌مى‌پديري
له خاونـد دامتـياز سره عـقده ده    چى‌په‌سر موشوه‌بمونه ، اوس‌وريژي
چى‌په‌زره‌باندي زخمى‌يم حيدري‌يم    پروت په‌خاوروكى قرآن مى نه‌هيري

# سپیځلی اتحاد

موږ غواړو وحدت یکی سپیځلی مسلمان غواړو
ورک مو دښمنان غواړو ـ ورک مو د ښمنان
موږنه ملیت غواړو ،نه موږ قومیت غواړو ،مرگ په دهریت غواړو
موږه ورورولی په پلوشوکی د قرآن غواړو
ورک مو دښمنان غواړو ، ورک مو دښمنان
نه خبیث روسان غواړو ، نه آمریکایان غواړو ، نه نور کافران غواړو
نه د اروپا انتخاب شوي غلامان غواړو
ورک مو دښمنان غواړو ، ورک مو دښمنان
موږیو دافغان زامن ، ټول دمسلمان زامن ، روژو به غازیان زامن
موږ په پاکه خاوره داسلام کی مؤمنان غواړو
ورک مو دښمنان غواړو ، ورک مو دښمنان
ټل موږه جهاد غواړو ، خپل وطن آزاد غواړو ، سرمروسان برباد غواړو
موږ افغانستان دکمونیزم گورستان غواړو
ورک مو دښمنان غواړو ، ورک مو دښمنان
یو الله اکبر لرو ، یو نبي سرور لرو ، پاک قرآن رهبر لرو
تنها قرآنی قانون حاکم په ټول جهان غواړو
ورک مو دښمنان غواړو ، ورک مو دښمنان

# خه غوارو

ویران په وینو رنګ افغانستان آباد وو
د روس له سیا چالونو مسلمان آزاد وو
آزاد به مو وطن شي یا نصیب مو شهادت
بهتر په عباداتو کې جهاد دی عبادت
جنت کې به حاصل کړو د پاک الله رویت
قرآن زمونږ قانون دی ملحدان برباد وو
د روس له سیا چالونو مسلمان آزاد وو
ښکاره به کړو جهان ته د ننه همت مسلمان
غیرت او متانت دخویندولونو د افغان
شړو ته له وطنه مونږ ناولی ملحدان
تاریخ دانګریزانو بیا جهان ته یاد وو
دروس له زولنو نه مسلمان ازاد وو
راځي په وطن جنګ دی استقلال لره ورځو
د امر اطاعت د ذوالجلال لره ورځو
په سرو وینو دحورو په ښخ خال لره ورځو
په شان د انګریزانو سره روسان نامراد وو
د روس د زولنو نه مسلمان آزاد وو

وطن له مو راغلی نن بی‌شرمه ملحدان

خوشحاله په‌راتګ ددوی ناولی ګوډاګیان

بدل به کړو ددوی په ګورستان دغه آرمان

خلقیان او پرچمیان او ماویستان نابناد وو

د روس د زولنو نه مسلمان آزاد وو

الله زموږ مولی دی لوی رهبر مو محمد

غالب در باندی نشته چی نصرت وی د احد

څو کفر په‌جهان وی ، کړو جهاد به‌تر ابد

جهان به په اسلام او تقوا ښا کوو

دروس له زولنو نه‌مسلمان آزاد وو

عجبه‌ننداره ده په‌جهان‌کی‌چه ښکاریږی

دملک په سردو کی شین بیرغ دی چی رپیږی

په ښکلی‌مخ ئی نور د حریت دی چه ځلیږي

حیدري ! په‌مجلس کی شهیدان رایاد وو

د روس له زولنو نه‌مسلمان آزاد وو

# د مسلمان بندي وینا

ګرانه مجاهده مسلمان یمه  پروت دملحدینو په‌زندان یمه
کله به می دغه ورځې هیری شي
یا به کله توری تیاری تیری شي
خلاص به‌می زړګی کله له‌ویری شي
تل په وینو سور دګل په‌شان یمه  پروت دملحدینو په‌زندان یمه
وچې شونډی سری سترګی په‌نم زما
غوارم د زخمی زړګی مرهم زما
نشته بې اسلامه بل څه غم زما
ژوند ته‌دسنګر دیر په‌آرمان یمه  پروت دملحدینوپه‌زندان یمه
خدایه دملحد خونه ویرانه کړی
هرمشکل دژوند په‌ماآسان نه کړی
دا توره‌تیار مهه ما روښانه کړی
رب ته امیدوار ستا داحسان یمه  پروت دملحدینو په‌زندان یمه
دا زما ګناه چې عبادت کوم
یا دفاع دکفر، دملت کوم
یا روښانول د حقیقت کوم
پښتو کې زولنې می دی حیران یمه  پروت دملحدینو په‌زندان یمه
څومی چې ژوندون وی سیاچالونو کی

پەسنگروکی داسلام پکلی غازیان جنگیری

دلااله الا الله کلمه خوا ن جنگیری

د محمدرسول‌الله تول امتیا ن جنگیری

لکەزمریان کوی حملی الحاد غمگین دی لورپەمرسلانورب تەنازنین دی

بدر-احد-خندق-حنین راعلی کورتەزمونږ

نظر دحق لکەد بدر پە شان لورتەزمونږ

دښمن حیران دی پەاخلاص او حیران زورتەزمونږ

دتکبیر غږ لکه خنجر پەهربی دین دی لورپه مرسلانورب تەنازنین

«وردک» ۱۳۶۲-۶-۱۳»

ټول مي حسابيږي په اجرونو کې
هم د پاک الله په رحمتونو کې
شکر بندي‌شوي په‌قرآن يمه          پروت‌دملحدينو په‌زندان يمه
څه‌کوم ګيله‌له‌ترکيانو نه
يا حفيظ‌لعين يا کارغلانو نه
نه دمارکس، لينين له غلامانو نه
خپلوسپو خوړلي‌په ميدان‌يمه          پروت‌دملحدينو په‌زندان‌يمه
رنګ په رنګ جزاوي مي ليدلې دي
دا دي لاس‌او پښې مي هم تړلې دي
ويني مي ډير څله بهيدلې دي
ګير په‌لاس‌دکفراوونادان يمه          پروت دملحدينو په‌زندان‌يمه
ډير ياران په شپو کې رانــه تللي‌دي
خداي خبر په‌کوم لوري بيولي دي
چيري ئې‌تر خاورو لاندي کړي دي
ظلم دبې‌رحمو ته‌حيران يمه          پروت دملحدينو په‌زندان‌يمه
ما وايل چې‌خلک‌افساني کوي
يا به کوم غرض ځانته قصې کوي
خوشي ملجسونه بې فايدې کوي
وس‌ور بندي پوهه دلمرپه شان‌يمه          پروت دملحدينوپه زندان‌يمه

چاچه قصی کړی له نمرودانو نه

یا د ظالمانو چنګیزیانو نه

هم د کارد سرخ لهحرامیانو نه

زه کوم قصی‌دادی کوبان‌یمه   پروت دملحدینوپه‌زندان‌یمه

نه‌ئی شتـــه مـل په تاریخونو کی

نه هسی وحشیان په ځنګلونو کی

نه هسی ماران په دښتو غرونو کی

دیر دیر ګرځیدلی‌په‌جهان‌یمه   پروت دملحدینو په‌زندان‌یمه

تول جهان پری بد وائی شرمیږی نه

سترګی دملخ په شان خوځیږی نه

نیم جهان‌د دوی دی لامریږي نه

سترګودروسانو ته‌حیران‌یمه   پروت دملحدینو په‌زندان‌یمه

ما وی حیدري په‌زه خبر کړمه

وروسته به‌ورو ورو خبر بشر کړمه

ګنګس به قصو به ددوی سر کړمه

دیر ئی‌دلیدلو په ارمانیمه   پروت‌دملحدینو په زندان یمه

•

# وارخطا شوی سره روسان دی

روسان راغلی په کابل باندی جنګونه کوی
مسلمانان ئی په میړانه ځوابونه کوی
وارخطا شوی سره روسان دی
له خپل کرداره پښیمان دی
رسوا رسوا په ټول جهان دی
اوس له‌دی دنده په ختو کی مجلسونه کوی
مسلمانان‌ئی په‌میړانه ځوابونه کوی
د دویه خیال د بخارا ؤ
تا جکستان ، چکوسلواکیا ؤ
بریژنیف تل پدی سودا ؤ
په خپلو سهوو شورویان اعترافونه‌کوی
مسلمانان ئی په‌میړانه ځوابونه کوی
کارمل ، بریژنیف ؤ غولـولی
چی وطن ټول په ما دریدلی
اوس ئی بادار پری پوهیدلی
له ډیری ویري خپل بادار ته سلامونه کوی
مسلمانان ئی په میړانه ځوابونه کوی

کارغل غلام ئی ترمخ کړی

پروت ئی په‌غاړه کی اوږد پړی

په کا جی بی کی ئی روزلی

په دوں‌همته‌تول‌جهان‌اعتراضونه کوی

مسلمانان ئی ئی په میړانه خوابونه کوی

بی ایمانه وجدان پلورلی

تل ئی غوږونه بوخ نیولی

بادار ته گوری غلی غلی

وطن‌ئی خرخ کړ د روسی سره کمکونه کوی

مسلمانان ئی په میړانه‌خوابونه کوي

تش په نامه باندی رئیس دی

بلکه طاغوت خوی د ابلیس دي

کارغل خبیث خوشی‌خسیس دی

روسان پراته په خپل پالنگ باندی خوبونه کوی

مسلمانان ئی په میړانه خوابونه کوی

الحاد بل کړی سره اورونه

حیدری پورته کړل لاسونه

غواړی له‌خدایه نصرتونه

په وروکای دملحدانو کی سوالونه کوی

مسلمانان ئی په میړانه خوابونه کوی

# خرخوی د زور سودا په دوکان ولی

بی گنادی کړل مجبور په هجران ولی    د حوا آدم بچیان ، مسلمان ولی
په هوا ، هوس او خیال دبنا کړی    حیوانی قانون ته بولی انسان ولی
بلبلان دګل اوبن په رمز پوهیږی    تادزاغ په پنجو مات کړل ګلان ولی
زړه خالی ، سرد خالی له معرفته    ئی دکور کالی دودی په آرمان ولی
چه موقف ته دخطروی اطفال وژنی    بل داور لکه نمرود په جهان
آدمزادوی، خدای پرست، شیطان پرست شوی    شرموی دخدای پرستو کاروان ولی
جماتونه د ویران کړل په بمونو    رنګ په وینو بی ګناه ماشومان ولی
نه پوهیږم څه متاع په خاکو پلوری    خرخوی د زورسودا په دکان ولی
تادخیتی په غم تول جهان د اړلی    لکه وړی لیوه ګرځی نسالان ولی
په پنجو کی چه کړیږی اوځوریږی    بلبلان په ژړا بولی خندان ولی
بندیان ئی دسبحان په ژبه غواړی    تا په ښکرو . داړوو کړ بیان ولی
پتی سنګی داسلام په آزادی ئی    په دووبرخو بالدی جهان ولی
دکوم اجر په امید بالدی روان ئی    چه منکر ئی دقهار او جبار ولی
حق قانون دی چه په زرو باندی حاکم دی    کړی بادازی په افغان ولی
بهانه دپه لیمه کو جوړه کړی    پوځوی په خپل دیار مؤمنان ولی
نور دواړه انګریزان امریکائیان کړل    افغانان شول پرچمیان څوخلقیان ولی
بی دفاع عالم دغرب په نامه وژنی    غربیان وژنی ستا په نوم مظلومان ولی

۱. غه‌تیک تیکماری سو بیل کړی    تول عالم انسان ، ته حیوان وړ
په خوله‌نخلی آزادی دانسان ولی    غوړولی موپه‌لارکی دامان ولی
شوک‌بندی‌شوک‌دژوندی‌په‌خاور وخښ کړل    په‌نامه‌دپاکستان‌اوایران‌ولی
چین‌درلنډ دی که‌ئی‌ځای‌درنه غلطوی    نه‌ئی‌ولی‌په‌را کتو جاپان‌ولی
د. آلمان‌اوفرانسی‌په‌سرپرواز کړه    امریکاته‌دی خطادی ایمان ولی
دسرووینوپه‌دنداب کی‌به‌ځان غرق کړی    هیروی دفرعونبانو داستان
ستا له‌لاسه ئی‌دزره‌په‌وینو لیکی    ستا ناخوالی‌حیدری په‌هجران‌ولی
به ظلمونه یی‌لیدلی حیـــدری دی    په‌ارامه‌نه پریږدی کافران ولی

# چه قـرآن په پـسو پلوری دهغو شه کور وران

هر دیر به وینو رنگ‌دی هره خوا کی جنگ روان
جور دسرو وینو سیلابونه هم دسروووینو طوفان
دالحاد وحشی پوځونه کړی په کلیو بمبارونه
ډیرتر خاورو لاند خښی شول نازولی مؤمنان
ډیر پرانه په‌زندانو کی‌دامید سترگی په‌لاره
څوک‌د ناز له انگړونو دهجران‌په‌لور روان
دالحاد له داړه‌مارو گیله نکړم دائی کاردی
چه قرآن په‌پیسو پلوری دهغوشه کور وران
دسرو وینو په دریاب کی داسلام‌دشهیدانو
هیچ‌وهلی ، به وهلی ښکار کوی څان نه کباب
نه‌ئی سک نه‌ئی غیرت شته نه‌وجدان نه‌ئی‌ایمان
نه‌بو سبی په‌بل پلوری دین، ناموس ، وطن،قرار
نفس‌پول یاره چه‌اوری کور دایله ورته اوری
ن‌غلام غوندی خرخ شوی چه‌پرون ؤ قهرمان
داسلام سلاح بی‌شره‌دهرچاسره بندی شوه
نه بوهیږه لیونتوب دی که‌ویده دمرگ‌په‌خوب‌دي
یانیشه‌دی په‌شرابو بادښمن‌دی دایمان
نه حیا نه خجالت شی!نه څیرسترگی ملامت شی
خدای‌خبر له کومی خوادی اوپه‌کوم لوری‌روان
چه لور ، څوی‌وی زیږیدلی هلته گرځی غلی غلی
یوځا غور خو حتماً ولی نور نو خدای لره‌یمان

# ماهیت به تغیر نکړے په لباس

ماهیت به تغیر نکړی په لباس
نه به زین بالدی به جوړ له تتو آس
دینداري د په‌عمل کی کړه ظاهره
کړه داجر خپل مولی ته پورته لاس
په سندرو باندی کونډی پیغلی نه شی
نه بلبل شی زاغ دګلو په تماس
ده پراخه هم ساحه د علم ډیره
محصور نه‌دی په قدوری و شرح الیاس
په آسانه اجتناب تری ناممکن دی
چه عادت شی د شرابو په ګیلاس
عبث کار دی آزمایښت د آزمایلو
مه غولیږی په ګفتار د هر خناس
نوری وایی دابه ښنګ دندانساز وی
چه په‌خپله ئی خولدماته غابښ کنداس

# د جهـــان ننـــداره

د یوه ورته راتلونْ دبل تری تلونْ دی
هم دیوه یکی وصال دبل بیلتون دی
څوک له درده د دردمانْ په آرمانْ ډرومی
دچا کورکی بی له درده درملتون دی
چا دبل په آزار جوړ کړل بازارونه
څوک راضی دخوارہ عمر په لندون دی
اصیل توب په خاندان او سرمایه دی
که بی مال شو لو لسب ئی لا معلوم دی
په لږ وخت کی ستر بدلون ته پاک حیران یم
چه پرون ئی درویزه کړه نن قارون دی
د الله قدرت له هیڅ شی محال ندی
تعجب دادی چه مدرک ئی نامعلوم دی

# خبرے نہ کوے

ولی به لهخیانه پهھرشان خبری نکوی
ځوک چه اسیرنه دزندان خبری نکوی

نن ئی توره خونه پهمانی بدلهشوی ده
څکه دویران افغانستان خبری نکوی

دی که کړی بل چاته دویران اولس خبری بیا
پلارد کوندو ، رندوشي دځان خبری نکوی

ګرځی دسرو وینو په ډنداب دشهیدانو کی
نیسی سره کبان ، ولی کبان خبری نکوی

ناست به د بودی په خیر هرچاته لاس په زنه وی
پټ په کناره کی دمیدان خبری نکوی

مه کوه ګمان چه دهرچا حق دخبرو دی
ولی په دربارکی غلامان خبری نکوی

څوورځی که تیری دبابا په دروازه کی کړی
بیابه د بهمنځ کی افسران خبری نکوی

څوچه مسلمان قول وعمل سره واحد نکړی
مصلحه دقضیی کی سور شیطان خبری نکوی

ولنم چه راغلی لهتلتک اوله خرګی سره
اوس لهغریبانو سرههیڅ شان خبری نکوی

# د حق آواز

وی داسلامی بیرغ　　　　تل هم د بلبلو ژغ
وی داسلامی بیرغ　　　　تل هم دبلبلوژغ
پاکه کلمه هم په بیرغ زمونږ نشان ــ زمونږ نشان
لا اله الا الله　　　　لا اله الا الله
لا اله الا الله　　　　لا اله الا الله
وایو کلمه د محمد رسول الله ــ رسول الله
پاکی کلمی گوری ستوری په آسمان غوندی
حسن دقرآن گوری نورماه تابان غوندی
دی ئی نورانی په نور همه واړه جهان
پاکه کلمه هم په بیرغ زمونږ نشان ــ زمونږ نشان
لا اله الا الله　　　　لا اله الا الله
لا اله الا الله　　　　لا اله الا الله
وایو کلمه د محمد رسول الله ــ رسول الله
زمونږ دحق په لاره کی سپینی جامی سری شولی
هم په دښتو ، غروئو کی پاتی خاطری شولی
دی په دښتو غرونو کښی پراته مو شهیدان
پاکه کلمه هم په بیرغ زمونږ نشان زمونږ نشان

اوښ له‌باره نه‌سری خوترلی په‌خرګی پسی
هرلوری کشکاړی له خفګان خبری نکوی

کل‌ئی دمظلوم‌اولس دوینو په‌خوله‌کړی دی
ولی‌به‌نیشه،خمار، خندان خبری نکوی

هرڅوک‌ئی‌په‌غلا غدر، چل‌ول باندی‌خبری‌دی‌نن
صرف،غرونه بیابان بحر آسمان‌خبری‌نکوی

چوخ‌ئی که په سترګو کړی دشرم‌ګومان مکوه
څوک‌چی‌بی‌حیاوی دوجدان‌خبری‌نکوه

وینی‌خرڅوی دسورکفنو دافغان‌اولس
حیف‌چی شهیدان دګورستان خبری‌نکوه

وائی‌چه خائن دحق‌ویلو نه خائفوی‌تل
ځکه‌د توپری غله ته‌نځوان خبری‌نکوه

هغه‌به‌کړیږی‌چه‌دروس په‌لمبوسوی‌وی
څوک‌چه‌دردمندنه‌وی ددرمان‌خبری‌نه‌کوی

عقل، هوښیاری، موفقیت‌ځان ته‌امضاء کړی‌دی
نورېه لزومدیدکی‌دسلطان خبری‌نکوی

توریری، راکټ ، کلشنکوف‌دمجاهد په‌کور
ولی‌په‌ګوښه‌کی قهرمان خبری نکوی

ګرځی‌ګنشفونه ، تورجیټان دمجاهدپه‌کور
ولی‌به‌له‌لیری‌دښه پلان‌خبری نکوی

بوه شه حیدری پەداسفر کی ثحەلیدلی دی
بی‌له حقیقته دکمان خبری نکوي

# قهرجن ماما

که بهتیا راپالدي وائي جهاد نشته — د پخوا په شان مريد او مراد نشته

له څوتنو پخوا لوچه جنګيږي — په سنګرکې بل په چا اعتماد نشته

زه په خپله ځان غوري درته نکړم — بل د ورور غوندې اتل او منقاد نشته

له اوله جلسې شروع دادې تر اوسه — کړم جهاد دا مې ثبات د فولاد نشته

ولې څه وکړم چه کارته مې دې ورکشوي — د تحسين پانه زره لورا سناد نشته

پخواني ارتباطيان مې شهيدان شول — له زړوورورانو يو په بلاد نشته

که په سترپو د حق لارکې بې خبرشي — پيا به خبرشي چه بل هسې فرهاد نشته

د هغو وخت د جهاد پيله مزه وه — اوس هغه تقوی، اخلاص او زهاد نشته

اوس که ګوري ملکان ټول مسلط دي — کړي ناخوالې ولې څاني د فرياد نشته

لور څه نه دي د جيبو نو خرڅول دي — حقيقت وايم په ما کې عناد نشته

تمغو هم څوشې او مياشتې راسره وې — نوز نو وايه په بل چاکې فساد نشته

د اصيل خط پيروان ټول مهاجر دي — ملامت ندې چاره د اولاد نشته

په وطن باندې مو بل دي سرا ورونه — د نجيب په څير غلام د الحاد نشته

چه ما کړې ځدای ليدلي، کور اوکالي — ويل به د مغوندې د روس بل جلاد نشته

د حضرت څخه خير په لاس بالازيري وکړه — په خبروکې مي دوړې او باد نشته

صرف او کلونه کيږي غريبي کړم* څکه کور، کالي، دودې اقتصاد نشته

څو وروران مې د عرب و مسافر دي — د لالا تقاعد شته د ګلداد نشته

کله نیث کرم چەجهادپەلوربەدروەمم خوانسوس‌چه احترام ، القیاد لە

خومهدی آخرزمان دخدای پیدا کری یاپه ملک‌کی لررقدم‌دالحاد

کەداکار وشو لو سیال‌بەموپیداشی زەآمرتەقوماندان‌لور مو‌داد لئ

چەروسان لە ملکه لارشی آزادی‌شی یاد وروررمحولدی وژونکی جلادنئ

دا بیان‌نی‌دنطرت پەژبه کری حیدری لور پە ماما کی‌عناد نشته

# څه امید به د بنادی په شپه دغم کړی

اعتماد چه په جهان او په دادم کړی — دبقا امید له عمره د شبنم کړی
ملل په لور دغشی په څیر دروسی — د حق لورته په دعوت کی په ځان خم کړی
دین کار کی دزېرکی له خولی نه وځی — ددنیا په کار کی ځان لکه رستم کړی
انتظار دعلاما تو د قیامت کړی — د ځان عمر له شیطانه سر فسم کړ
که تصویر دخپل عمل درله عیان شی — له ژړانه به دوچ دستر گو نم کړی
له یوی خوا تقویه دبدعمل کړی — اوله بلی خوا خبری دحرم کړی
د درد منو لا هنوز په دردزیاتی ئی — دبی دردو زور ور وځان ملهم کړی
په ظاهر کی ادعا دمحبت کړی — اوبه پټه به خپل ځان لکه لړم کړی
که داکار د اسلامیت وی تری منکریم — چه رنا جهان په ځان باندی تورتم کړی
ن دی وار دی په وجود کی توبه کار شه — فایده نشته په آخر کی چه ندم کړ
هر عمل په خپل محل کی مناسب دی — څه امید به د بنادی په شپه دغم کړی
د سپین کفن دخولی په وینو سور شی — خدای نا ترسه بیا به څه په ځان ماتم کړی
څود کبر خولی کښته له سر نکړی — گمان نکړم چه به حق لره ځان سم کړی
نوری له خولی وتلی واړه حق دی — حو افسوس چه له عنوانه ځان نا بهم کړی
میدری که د ته خپل عیبو نه لیکی — نو به خلاص ور باندی رنگ او زور قلم کړی

# د یثرب نوم      مدینه کړ مصطفی

تاریخ یاد لری ښه بد د هرچا      هر هر فرعون ته پیدا کړی رب موسی
د عمل جزا حتمی د مځان خبر کړه      که اورنګ د زمانی شی که ګدا
پټ بې مه بوله که غږ کولی نه شی      مظلومان د حال په ژبه وی ګویا
د نیل رود په قوماند ه د عدل ګوره      غرقوی چه څوروی دوست د مولی
د اخدود اصحاب په خپلو لمبو وسول      ابراهیم په سرو لمبو کی په خندا
یا رهغه دی چه منکر په مینه نه شی      په میدان د آزمایش او ابتلا
د احمد یتیم د علم په ډیوه شو      د عربو د ظلمت جهان رڼا
سپین رخسار ئی رنګینه په خپلو وینو      د یثرب نوم مدینه کړ مصطفی
د اتل حمزة توټی په شهادت کی      دی ګواه په حقانیت د مدعی
د ایمان په ګناه اور لرة لاهو شول      څو منکر په مینه نه شول د الله
هره څوله په حق ویلو نه خوځیږي      له د حق په لیدو هر سړی بینا
یو، یو ځوان به قربانی لره حاضروی      لعل و نه ګنی هر کانی د صحرا
د خبرو عاشــقان په دنیا ډیر دی      د لیلا مین او سیږی په بیدیا
یا رهغه چه په سختی کی د ر سره وی      نه یاران د وریجو غوښو او حلوا
تیارخور له نور و زیاته بر خه غواړی      په نظر کی هر موقع بولی وریا
پتنګان په شمعه پټه څوله سوځیږی      نه چه لاف باتی ولی په ریــا
زړ لایق د عبادت مو پاک الله دی      جنت مه غواړه په ذکر له بل چا
په طعنو د بست فطرتو خفه نه شی      لیږم چیچ کړی د فطرت په مقتضا
چه اور میږئ د مولی په تور مخ وځ شی      روغ به نشی په درمان د مسیح
حیدری سور استعمار به سر نګون شی      په ګذار د عقیدی، ایمان، تقوی

# هیر بەمی نەشی پەماگرانە

چەد لەفخرە جنازی لەراحی‌ستاملائکی‌لە آسمانە
سورد کفن دشهادت پەوینونەهیرومەپەماگرانە

شهیدە ولاری دجنت پە لوری
لەددنیا نەد عزت پە لوری
ئی دبنمنان ددذلت پە لوری
تەئی روان د شرافت پە لوری

پەکوردی‌پاتەماشومانە هیربەمی‌نەشی‌پەماگرانە
چەدلە فخرەجنازی‌لەراحی‌ستاملائکی‌لەآسمانە
سوردکفن دشهادت پەوینونە هیرومەپەماگرانە

ملاوی تژلی جهادو نە کوی
پە جکو غرو کی سفرونە کوی
د دبنمنانو تعقیبونە کوی
پە سرو روسانو، گذارونە

دحق‌پەلارمسر گردالە هیر بەمی نەشی پەماگرانە
چەلەدفجرە جنازی‌لە راحی‌ستا ملائکی لە آسمانە
سوردکفن‌دشهادت پەوینو نەهیرومە پەماگرانە

پراتە پەاورکی دهجران وگورە
زیری رنگونە بتمانَ وگورە

بی اتفاقه مؤمنان وینمه
د خپلو کیلو غلامان وینمه
دیر دسرو وینو تجاران وینمه
چه ځان خرڅ نه کړی غازی شوانه هیر بهمی نه‌شی پهما گرانه
چه‌دله فخر جنازی‌له راځی ستا ملائکی‌له آسمانه
سوردکفن دشهاد پهوینو نه‌هیرومه په ما گرانه
څوک له وطنه‌هجرتوله کوی
څوک په اسلام تجارتوله کوی
څوک وچی ځوندی جهادونه کوی
څوک‌خپلی کلی پاسپورتونه کوی
پروت په کمپو د پاکستانه هیر بهمی نه‌شی په ما گرانه
چه دله فخره‌جنازی‌له‌راځی ستاملائکی له‌آسمانه
سور دکفن‌دشهادت پهوینو نه‌هیرومه‌په‌ما گرانه
پهسپین قرآن بانددی‌رمین وکوری
ترخاورو لاندی‌سپین کفن‌وکوری
پهسیاچالوکی کل بدن وکوری
خوار حیدری پهزره غمجن وکوری
دپاکون پهلور روانه هیربه می‌نه‌شی پهماگرانه
چه‌د له فخره جنازی‌له‌راځی ستا ملائکی له‌آسمانه
سوردکفن دشهادت پهوینو نه‌هیرومه‌په‌ما گرانه

پەویتو رنک افغانستان وګوره

په سیاچالو کی اسیران وګوره

لەخو پەوینی شەمسلمانه هیر بەمی نەشی پەما ګرانه

چەدلەفخره جنازی لەراځی ستا ملائکی لەآسمانه

سور دکفن دشهادت پەوینو نەهیرومەپەما ګرانه

وطن پە وینو باندی رنګ شکاریږی

زرونه زخمی ، ښارونه رنګ شکاریږی

مجاهدځوان لکه پتنګ شکاریږی

دحق پەلاره کی ملنګ شکاریږی

د سنګرونو قهرمانه هیر بە می نەشی پە ما ګرانه

چەدلەفخرة جنازی لە راځی ستا ملائکی لەآسمانه

سورد کفن دشهادت پەوینو نەهیرومه پەما ګرانه

وران مسجدونەدافغان وګوری

د روس پە لاس تونی قرآن وګوری

د روس ظلمونه پەجهان وګوری

دا جاسوسان ، کمونستان وګوری

د توروغرو مجاهد ځوانه

هیر بەمی نەشی پەما ګرانه

چەدلەفخره جنازی لەراځی ستا ملائکی لە آسمانه

سورد کفن دشهادت پەوینو نەهیرومه پەما ګرانه

نن پەوطن کی ظالمان وینمه

بل به وطن‌مو سره اورونه کوری

توتی قرآن وران مسجدونه کوري

دمجاهد په‌کور بمونه کوری

د جاسوسانو خدمتونه کوری

په جهادونوکی ستومانه هیر به می‌لنشي پساکرانه

چه‌دله‌فخره جنازی له راځي ستا ملائکی له آسمانه

سور د کفن‌د شهادت په‌وینو نه‌هیرومه پساکرانه

لاالــــه الاالله
لاالــــه الاالله
لاالـــه الا الله
لاالـــه الاالله

وایو کلمه د محمــدرسول‌الله ــ رســول‌الله

وینی د شهید شولی ، اوښکی دیتیم شــولی
لوړی دمظلوم شـولی چیغـی دسقیم شــولی
خدا یه ته نازل په ملحدینو کـړی طـوفـان
پاکه کلمه هم په بیرغ زمونږنشان‌ـزمونږنشان

لا الـــه الاالله
لا الـــه‌الاالله
لا الـــه‌الاالله
لاالـــه‌الاالله

وایو کـلمـه دمـحمـدرسـول‌الله ــ رسـول‌الله

شولی دمولا پتنګ سری‌جامی دګل پـه رنـګ
تیر شولی ترنام وننګ کیناستی دیارتر څنګ
ځـای د شـو شـهیـده دبلبلو ګـلـستـان
پاکه‌کلمه هم‌په بیرغ‌زمونږنشانـزمونږ نشان

لا له الاالله
لا اله الا الله
لا له الاالله
لا اله الاالله

وایو کلمه د محمد رسول‌الله - رسول الله

دادی اسلامی وطـن، دادی‌انـسانی وطن
نه دی الحادی وطن ندی د روسی وطن

# ترانه

تا به آزاد کړو یا به واړه شهیدان وطنه    دمسلمان وطنه افغانستانه

موږ یو زامن د اسلام    وار مین په اسلام    وژنو دښمن د اسلام

ته گلستان ئې موږ دواړه بلبلان وطنه    دمسلمان وطنه افغانستانه

ټول ماشومان د وطن    نجونی طوطیان د وطن    ټول بلبلان د وطن

په تیږو ولی ستا ناولی دښمنان وطنه    دمسلمان وطنه افغانستانه

ستا له سیندونو جارشو    له دانکو غرنو جارشو    له ځنگلنو جارشو

درته پراته په سر دروکی شنه زمریان وطنه    دمسلمان وطنه افغانستانه

په سر دروکی دستا    کلو کوروکی دستا    ښکلو ښارو کی د ستا

په سپوروسانو موجوړ کړی دی باران وطنه    دمسلمان وطنه افغانستانه

په وطن جنگ وکوی    ځواناتو ننگ وکوی    ټول پری غورځنگ وکوی

د لااله الاالله کلمه خوان وطنه    د مسلمان وطنه افغانستانه

شکر ایمان لرو موږ    کتاب قرآن لرو موږ    دیر عالی شان لرو موږ

د محمد رسول الله یو پیروان وطنه    د مسلمان وطنه افغانستان

داد ستالین بچوړی    بریژنیف، لینن بچوړی    دکاسیگین بچوړی

دا دمار بچوړی به پری نږدو په جهان وطنه    دمسلمان وطنه افغانستانه

موږ انگریزان شړلی    سترابلیسان شړلی    اوس کارغلان ناولی

د مکناتین په خیر شړو دا ملعونان وطنه    دمسلمان وطنه افغانستانه

ټول دیاران شهیدان    دپربلبلان یتیمان    ددیرو ځای شو زندان

نوریه ځان په دیو مسوځی پتنگان وطنه    دمسلمان وطنه افغانستانه

# وطن ته

ستا پەسر دروکی دزمریانو سنگرونه‌دی ښکلی دهوا، خوږی او به ښکلی باغو

تابه پەسروونو کړو آزاد له ملحدانو نه

خلاص به شی وطنه د بریژنیف له گوډاگیانو نه

داد بشریت له دښمنانو او مارانو نه

خیر دی که‌ږک نن د پە طوطیانو محبسونه‌دي

ښکلی دهوا ، خوږی او به ،ښکلی باغونه‌دی

خلاص مو کړی پلرونو له‌شلطی د انگریزانو نه

موږ به‌دی کړو خلاص نن د لنین له کوچنډیانو نه

هم د امریکا ، چین ، فرانسی له اجیرانو نه

جوړ دشهیدانو دسروونو طوفانونه دی

ښکلی د هوا ، خوږی او به ،ښکلی باغونه دی

ته داسلام خونه ئی وطنه‌دبل چا نه ئی

ته افغانستان ئی ، بخارا چکوسُلواکیا نه‌ئی

خیری به‌ئی خوله‌شی دبرنیږنیف‌دخولی خلوا نه‌ئی

دا د نانجینانو ، اجیرانو تش خیالونه دی

ښکلی دهوا ، خوږی او به ، ښکلی باغونه دی

موږ مسلمانان یو نه‌ویریږو له ټانکونو نه

نه به وکړو ویره د نجیب له‌سیاچالونو نه

نه دطیارو ، تورو توپو له کاروانونو نه

تل د ابراهیم په‌خیر قبول مو سره اوروونه دی

ښکلی دهوا،خوږی اوبه ، ښکلی باغونه دی

اوری په اسلام بالدی دوینو بارانونه‌دی

ښکلی‌دشفق په‌شان ئی غرونه او رغونه‌دی

زیات له‌شماره تیر دشهیدانو کاروانونه دی

داد بشریت دد ښمنانو خلمتونه دی

ښکلی‌دهوا ،خوږی‌اوبه ، ښکلی باغونه دی

موږ د دون‌همتو په پنجوکی اوسیدی نه‌شو

تول جهان به پرېږدو خو اسلام پرېښودی نه‌شو

خدایه بی‌لستانه بل دربار ته تښتیدی له شو

خیستی نجیب‌یانو دبریږنیف په‌لور کامونه دی

ښکلی‌د هوا ، خوږی‌اوبه ، ښکلی‌باغونه دی

خدایه نوری ستا په‌لورنیولی خپل‌لاسونه دی

غوښتی ئی دتولو زخمی زړونو ملهمونه دی

هم‌ئی د الحاد په ورکاوی کی دیر سوالونه دی

بل له خبیثانو په جهان کی سره اوروونه‌دی

ښکلی دهوا ، خوږی اوبه ، ښکلی باغونه دی

# لسنلړی

ستا ترداسرو جاموقربان شم    قطرو دوینود سنګرکرسره ګلونه
څوانان بندیان څوک شهیدان شول    څوک په مسکو کی دملحدکالی بندونه
چه داسلام دیوه بلیږی    پتنګ پری سوځی خوامځواځهل وزرونه
داد بشر خدمتکاران دی    چه په ژوندو څوانانو خاوری اړوینه
خپل مو رویبار دکوځی ماردی    چه په وطن کی مو روسان قدم وهینه
څو په نطفه کی حرام نه وی    کله وطن په بیګانه ؤ خرخوینه
شعارئی کور کالی دودیؤ    کورئی شو ګور ، کالی کفن دودی غمونه
چه معتقد په مولی نه وی    له بی ایمانو څه امید د وفا شینه
اول دکور روسان سردار کړی    ناموس پلورونکی حق د ژوند کله لرینه
څوانانو ننګ په اسلام وکړی    چه مو پایئال په مځ کی نه شی ناموسونه
ځان په اسلام باندی شهید کړه    چه پاک مولی د په رحمت جور کړی زخمونه
ماد یتیم لمسترګو جار کړی    چه د شهید د وینو رنګ رایادوینه
د یتیم سری سترګی قربان شم    پکی ښکاریږی د شهید دباغ ګلونه
په آسمان ستوری ښه ښکاریږی    په مځکه ښه د شهیدانو مزارونه
مجاهد څوان را باندی ګران دی    ستری ستومان دی په قرآن سر ورکوینه
که څوانان واره شهیدان شول    زرغون بیرغ به ماشومان په اوږو وړینه
د روس په لاس توتی قرآنه    را باندی ګرانه زه دکله هیرومه

په وینو رنګ افغانستانه په جګو غرو کی دی جوړشوی مزارونه
یا به می سری جامی په تن شي یا به بیرغ په کرملین ودرومه
دیر شه دسرو وینو سیلابه په جهو وران کړه دشیطان جوړسنګرونه
ز ه حیدری په زړه زخمی یم قلم په لاس دالحاد لیکم وحشتونه

# دماشوم غازی ترانه

دین لرو ، غیرت لرو ، پیرودسپمن قرآن یو

موږ مسلمانان یو ، موږ مسلمانان یو

شکودین،ایمان لرو پاک قانون قرآن لرو لوړنام اونشانَ ملک کی شنه زمریان لرو

بل مولی مو نشته بندګان دپاک سبحان یو

موږ مسلمانان یو ، موږ مسلمانان یو

موږیودافغان زامن تول دمسلمان زامن روزوبه غازیان زامن یابه شهیدان زامن

نه پریږدو کافر په وطن تل په دااعلان یو

موږ مسلمانان یو ، موږ مسلمان یو

دادی اسلامی وطن نه دی دروسی وطن دامو ګلستان چمن وژنوبه کی هردښمن

وایو تکبیرونه ماشومان ښکلی غازیان یو

موږ مسلمانان یو موږ مسلمانان یو

پاک الله احدلرو یونبی احمد لرو پاک دین ترابدلرو لوړتر آسمان قدلرو

موږ ددین ، ناموس اوخپلی خاوری پتنګان یو

موږ مسلمانان یو ، موږ مسلمانا یو

موږواړه غازیان یوتول ځوجنګ ته روان یوتول نسل دافغان یوتول

ښکلی ماشومان یو تول

اخلو انتقام د شهیدانو وارثان یو

موږ مسلمانان یو موږ مسلمانان یو

# آخرسوځی چه دخدای بندګان سوځی

غرونه‌سوځی،دښتی‌سوځی:انسان‌سوځی دنمرود داورلمبی‌دی‌مرغان‌سوځي
سرکره پورته‌دغفلت له‌خو بهوبیښ‌شه نازولی په لمبو دهجران سوځی
سره وحشیان‌چه‌سرمخلقیان‌ئی‌رو‌یباران‌دی جوماتونه‌ورانوی‌اوقرآن‌سوځی
هسی‌باد دی دصرصر راالوتلی سری‌لمبی‌ئی زراعت‌اوګلان سوځی
چه‌په وران افغانستان‌کی‌اور بل‌شوی که‌ګل‌نه‌شی‌په‌لمبوئي جهان‌سوځی
سرمخلقیان‌او پرچمیان‌چه‌خام‌کله‌دی نه‌پوهیږی چه ریښی دافغان سوځی
داخدوداصحاب په‌خپلولمبوسول آخرسوځی چه‌خدای بندګان‌سوځی
ملحدان به‌ددوزخ‌په اورلاهوشی هسی‌اورچه جوړ‌له‌اوره،شیطال سوځی

# دمور مقام داسلام لښه نظره

لەدوستانو چەاسلام ورتەقائل دی ترهمەواړوعالی دمور مقام دی

شرین خانۍ ستاغذاده کرزولی چەتشکیل دلەهغەهریو اندام دی

شپەاوورځ دستاپەغم کی مبتلاده دخپل ځان نا ارامی یی دستاآرام دی

کەغمونه دجهان ترینەچاپېرسی ستالپارەڼی پەخولەشرین کلام دی

جارقربان الله الله درلرەوای پەخواږەخوب کی یی هم درباندی پام دی

کەرنځورشی تول دوستان درنەبیزارشی مکرستاخدمت پەموړباندی الزام دی

لومړنی استاذ موردەکەپوهیږی کەهرڅوڅانبی رنگ اوننگ اونام دی

بل بەداسی وفادارپەدنیانەوی چەدژونەهیلەئی ستا دښەانجام دی

چەاسلام دومرەعزت ورلەورکړی دنوری هم خپلی موړلرەسلام دی

# هرسړی یکی غوړلی وهلی نه شی

چه‌ دژوند پـه‌محوطه‌کی آزاد گرزی دخپل توان‌ په اندازه دغه تقدیردی
ته‌کولی‌شی زورزیات په‌ریاضت‌ کړی یکی ایښی‌خصوصیت‌مولی بصیردی
خوبه‌ستاده‌په‌هرځای‌کی‌چه‌اوسیږی مسخرپه‌مشیت درته‌مسیردی
درضالارنی‌روښانه‌لکه‌لمرده تاخوړلی‌په‌اختیارغنم، انځردی
دمسیرپه‌یوطرف‌چه‌مجبورشوی ځلانده‌لمردی‌چه‌جهان‌لرمنیردی
په‌گوناه‌کی‌که‌لاهوشوی‌ورته‌ژاړه په‌سیلاب‌د دغه‌اوښکوکی‌تاثیردی
ځان‌خبرکړه‌خلیفه‌دټول‌جهان‌ئی ستاپه‌لاس‌کی‌دهوا،هوس‌ځنځیردی
رب‌دلاس‌داوږدولوحق‌ورکړی په‌دنیاکی‌که گدادی که‌امیردی
اصیل‌توب‌اوغلامی‌داستاپه‌لاس‌دی دوجدان‌په‌قضاوت‌غلام زهیردی
دهرڅه‌په‌لاس‌راوړل‌بی‌شرطه‌ندی پرهیزنه‌کړی‌له‌ددوانه‌چه دلگیردي
ابراهیم‌په‌سوځونکی‌اورکی‌ساتی دهردرد دواکه‌غواړی‌رب‌قدیردي
سری‌لمبی‌دسرو اورونوهرڅه‌سوځی خوساتلی‌خپل‌خلیل‌مولی کبیردی
دنیل‌رودکی‌هم‌سنن‌دغرقیدودی دموسی‌دژړه دردوته مولی‌خبیر دی
قریشی‌احمد،صدیق‌هم‌له دښمنه چه‌د ثورپه‌غارکی‌ساتی‌ذات‌بصیردی
چه‌کړی‌سری‌وینی‌دحق‌په‌لارکی‌توی سور کفن‌ئی‌دجنت‌په‌لورپهیردی
امیدواراوسه هم‌ویره ځنی‌وکړه هد ئی چه‌بشیر دی هم‌نذیردی
په‌لانده‌کریوان‌اواوښکوئی‌تری‌غواړه داجهان‌ځای‌دگدااوهم‌دویردی

په ليكلوپسي‌مه‌كرځه ژرپوه    بي‌حسابه ئي‌رحمت په‌هر فقير دى
په‌نظرچه بيهودموږلره ښكارى    لاندى، باندى لمر سپوږمى وايه‌ضريردى
چه‌په‌ضدده‌رسنت متوصل‌شى    حاصل‌وينى‌داتقدير دحق خبيردى
حيدرى‌يم له‌تقديرمچه كويايم    هم‌ليدلى‌مى نصرت‌د رب‌نصيردى
له تقديره بل‌تقديرته‌پنايوسه    چه‌توان‌من‌ئى خصوصيت په‌هرتقديردى
هر سرى‌پكى‌غوتى‌وهلى‌نشى    يو ، يوځوان‌ددغه‌بحر ماهى‌گيردى
دنهنگ‌په‌نسل‌كى اوسى‌په‌درياب‌كى    دذنون‌په‌حال شامل‌د حق‌تدبيردى
چه‌عيسى،يوسف‌اونورئى‌ديرساتلى    په‌فرمان‌دحق‌هرتوان‌فرمان‌پذيردى



نور به دلته نه وی ملحدان او بیزوګان

پاکه کلمه هم په بیرغ زموږ نشان ـ زموږ نشان

لااله الا الله　　　لا اله الا الله

لا اله الاالله　　　لا الــه الاالله

وایو کلمه د محمد رسول‌الله ـ رسول الله

دی په دښتو غرونو کی، واورو بارانونو کی

غرونو اوسیدونو کی تندو او زخمونو کی

زمونږ مجاهدین فضل دوکوی سبحان

پاکه کلمه هم په بیرغ زموږ نشان زموږ نشان

لاا له الاالله　　　لا اله الاالله

لاا له الاالله　　　لا اله الاالله

وایو کلمه د محمد رسول‌الله ـ رسول‌الله

دا د میړنو وطن دا دشنو زمرو وطن

دامو دپلرو وطن، ندی دپردو وطن

ندی د پردو پـکی اوسیږی مسلمان

پاکه کلمه هم په بیرغ زموږ نشان ـ زموږ نشان

لا اله الاالله　　　لا اله الاالله

لا اله الاالله　　　لا اله الاالله

# لمنهونيوه

ځينو دالله اوذوالجلال لمنه ونيوه    ځينودد نيا دخطاوخال لمنه ونيوه
ديروپه دنيا کی الحاد، کفرشانته غوره کړ    چادحق دلاری دمشان لمنه ونيوه
چادشهادت اوجهاد لاره مختاره کړه    چاددی جهان مال اومنال لمنه ونيوه
چاپه پاکووينودحق لاره رنګينه کړله    ځينود فرار اوميو، دال لمنه ونيوه
تدردهغوی دی په ميزان دجاطلبوکی    چاچه دهغوی دقيل وقال لمنه ونيوه
دلته دتقوی اوهوښياری خاوند هغه بوله    کوم چه دغښ ځيتو ددلال لمنه ونيوه
مکوه ګومان چه کاميابی به ئی په برخه شی    چاچه دګيدړاودشغال لمنه ونيوه
چيری چه ګيدړه د چرګانو ساتنمنه شوه    وروته داوبوئی دغربال لمنه ونيوه
رخوله جهان ته کوړ، کالی دودی شعاردروغ    سره الحاد جهان ته دجنجال لمنه ونيوه
نه زيږی ګلان له کاکرو، تيرو وچولوتونه    ځکه بابلانود بڼ وال لمنه ونيوه
ديرولوی الله ته په هرڅه کی ځان سپارلی دی    ځينويومنګی ته دکلال لمنه ونيوه
ځينو دبابا پسی دغرب په لور ناری وهی    چاپه آذانو کی دبلال لمنه ونيوه
ځينی بنکاره ناست وی له ريانه په بوريا باندی    ځينودهوا، هوس اوخيال لمنه ونيوه
ورک ندی له خدايه که هرڅو پټی چرچی کوی    چاچه يتيمانوته دچال لمنه ونيوه
ماپوښته له دردمچه دردونه می ليدلی دی    ولی ددخيال اودقوال لمنه ونيوه
حيف دی چه بی جنګه په نبردکی قهرمان ؤينم    ولی ئی عمل ته دزوال لمنه ونيوه

وايم حيدری شرق اوغرب دواړه دی دښمن زمونږ
صرف می پاک الله لره دسوال لمنه ونيوه

وایو کلمه د محمد رسـوالله - رسـول‌الله

الله اکبر وایو ، درود په لوی رهبـر وایو

هرشام اوسحر وایو، کوراو په‌سنگر وایو

تل‌دوی ملحدینو ته جهاد زموږ اعـلان

پاکه‌کلمه هم‌په‌بیرغ زموږنشان‌زموږنشان

لااله الاالله
لا اله الاالله

لا اله الاالله
لا اله الاالله

وایو کلمه‌د محمد رسـول‌الله -رسـول‌الله

خوار نوری‌له‌ژونده‌تنگ‌دوب‌په گناهونوکی

سترگی دیاتوتو رنک ژوند ئی په غمونوگی

خدایه ته‌کامیاب کړی په‌جهادکی‌مسلمان

پاکه‌کلمه هم‌په‌بیرغ‌زموږنشان‌زموږنشان

لا اله الاالله
لا اله‌الاالله

لا اله الاالله
لا اله‌الاالله

وایو کلمه دمحمدرسول‌الله - رسـول الله

وردگ ۱۳۵۷-۵-۱۵

# اسلامي شنه بيرغ ته

څانده ولاړ يږه شنه بيرغه د اسلام

ارض و سمأ ، انس و جن ولاړ په احترام

الله اکبر لا له الا الله          لا اله الا الله الله اکبر

تل د وی حاکم د وی قرآن زمونږ رهبر

تل د وی قائم د وی قرآن زمونږ رهبر

لا آله الا الله الله اکبر          لا اله الا الله الله اکبر

ستا په لوړيدو کی ننګيالی شول شهيدان

څوک ئی شول بندی د ملحدينو په زندان

سينه کړه حاصله همه واړو د سبحان

ستا په مخ دی نوم د ذوالجلال و الاکرام

ارض وسمأ ، انس اوجن ولاړ په احترام

الله اکبر لا اله الا الله          لا آله الا الله الله اکبر

تل دوی حاکم دوی قرآن زمونږ رهبر

تل د وی قائم د وی قرآن زمونږ رهبر

لا اله الا الله الله اکبر          لا اله الا الله الله اکبر

ښکاری رپيدو کی ستا غيرت د مسلمانو

ستا په ډيوه وسول خپل ځانونه پتنګانو

سترگی شی ړندی ستا په دیدن د ملحدانو

واړه یو مأمور د حبل‌الله په اعتصام

ارض او سمأ ، انس اوجن ولاړ په‌احترام

الله اکبر لا اله الا الله لا اله الا الله الله اکبر

تل د وی حاکم د وی قرآن زمونږ رهبر

تل د وی قائم د وی قرآن زمونږ رهبر

لا اله الا الله الله اکبر لا اله الا الله الله اکبر

څو مو چه ژوندون وی تابه ساتو په ښه شان

واړه مؤمنان دی ستا د مینی مجنونان

سوی ستا د مینی په لمبو شول جنتیان

ته له نعمتونو د الله ئی لوی انعام

ارض او سمأ ، انس او جان ولاړه په‌احترام

الله اکبر لا اله الا الله لا اله الا الله الله اکبر

تل دوی حاکم دوی قرآن زمونږ رهبر

تل د وی قائم د وی قرآن زمونږ رهبر

لا اله الا الله الله اکبر لا اله الا الله الله اکبر

موږ مسلمانان‌یو هیڅ له مرگ نه ویریږو

بلکه شهادت ته د حق لار کی هوسیږو

تل د دښمنانو مقابل کی به جنگیږو

